نبوي مرغلري
رسول الله (ص) فرمايلي دي:
ژباړه: که څوک غواړي چي روزي يې پراخه او عمر يې اوږد سي، نو له خپلوانو سره دي نېکي کوي.
﴿رواه المسلم﴾

# طلوع افغان

غوره ويناوي
عبدالهادي "همت":
يو ګرام عمل؛ تر يو ټن خبرو ښه دی!

د امتياز څښتن:
د کندهار اطلاعات او فرهنګ رياست

مؤسس: مولوي صالح محمد "هوتک"
په اونۍ کي دوه واره چاپېږي

د تأسيس کال: ۱۳۰۰ لمريز، چهارشنبه ۲۰/شعبان المعظم/۱۴۴۶ هـ ق، ۱/کب/۱۴۰۳ ل کال - ګڼه (۷۱)
Wednesday-19-February-2025 Issue: 71

## د مطالبو سرليکونه



د طلوع افغان خبري (سرليکنه)

پردي نه خپلېږي؛
## په پرديو چي ځړېږي، هغه به لوېږي!

په افغانستان کي شل کاله ځينو خلکو د امريکا او متحدينو د ګټو له پاره جګړه وکړه، پر خپلو خلکو يې د توپک زور او به کړ، پردي يې ستراتيژيک دوستان بلل، اما خپل يې ازلي دښمنان!
دغه د غربي هيوادونو پاسپورټ درلودونکي چي پر خپلو خلکو څومره فرعونيان ول، تر هغه زيات د غرب تالي څټي او غلامان ول.
امريکا او متحدين يې د افغانستان ملاتړي ګڼل، دوی ته يې د افغانستان په خاوره کي نظامي اډې ورکړي وې.
اما په افغانستان کي د جمهوريت تر سقوط او د اسلامي امارت تر حاکميت را وروسته، دغو خلکو خپلو پاسپورټونو ته لاس کړ، پر غربي هيوادونو ور مخ سول.
ځينو کسانو په ډېرو خواريو د غرب لمني ته ځانونه ورسول، ځيني يې لا هم له کلونو راهيسي د انتظار شپېي شمېري.
په دې وروستيو کي د امريکايي حکومت په مشرتابه کي تغيرات راغلي، نوي ولسمشر د واکمنېدو په هماغه لومړيو ورځو کي اعلان وکړ، چي امريکا هيڅ مهاجرين نه مني، آن هغوی هم بيرته معطل سول، چي له درو کلونو راهيسي يې پر قضيو (کېسونو) کار روان دی.
په افغانستان کي د اسلامي امارت تر حاکميت را وروسته، يو شمېر اروپايي هيوادونو، که څه هم افغانانو ته دسترخوانونه هوار کړل، هلته د ورتګ شين څراغ يې ورته ولګاوه، دا په اصل کي له افغانانو سره د دوی د ميني نه، بلکي افغانانو ته د دوی د اړتيا له امله وه.
اروپايي هيوادونه د انساني قوې له کمښت سره مخ دي، فابريکې لري، خو په کافي اندازه کارکوونکي نه لري، د افغانانو په ورتګ سره دوی غواړي، دغه تشه ډکه کړي، بل لامل يې ښايي دا وي، چي دوی غواړي، هلته مېشتېدونکي افغان مهاجرين، د راتلونکي له پاره وساتي او د افغانستان د اسلامي امارت پر خلاف، د دوی څخه سياسي استفاده وکړي او د رېيم لامل يې ښايي دا وي، چي د افغانستان د اسلامي امارت په راتګ امنيت قائم سوی، د هيواد د پرمختګ له پاره يو ښه فرصت موجود سوی، نو د دې له پاره چي د افغانستان د پرمختګ مخه ونيسي، د افغانانو د متفرقه کېدو په خاطر يې افغان مهاجرينو ته هلته د ورتګ له پاره شرايط جوړ کړل.
په پايله کي بايد ووايو، چي پردي په هيڅ صورت نه خپلېږي، که نن امريکا مهاجرين شړي او له منلو يې ډډه کوي، سبا به همدا اروپا عين عمل تکراروي، ځکه پرديو ته يوازي خپلي ګټي مهمي دي، د افغانانو خواخوږي هيڅوک نه دي. اداره

## د کندهار - هرات د اوسپني پټلۍ د تفصيلي سروې او ډيزاين چارو پروژې پرانيستنه وسوه

د پرانيستني په مراسمو کې يې چې د کندهار ښار د عينو مېنې په ښارګوټي کې جوړ سوي وو، د اسلامي امارت مرکزي وياند مولوي ذبيح الله مجاهد، د رياست الوزرا د اقتصادي معاونيت سلاکار الحاج مولوي ولي جان اخند، د ټولګټو چارو وزارت د اوسپنيزي کرښي مرستيال الحاج مولوي محمد اسحاق صاحبزاده، د کندهار والي مرستيال الحاج ملا محمد صادق انقلابي، د سوداګرۍ خوني رئيس حاجي محمد صديق مهمند، ښاروال مولوي عبدالله روحاني، د اطلاعات او فرهنګ رئيس مولوي انعام الله سمنګاني، د بېلابېلو رياستونو رئيسانو، تجارانو، د اوسپنيزي کرښي د تفصيلي سروې او ډيزاين چارو انجنيرانو او عامو هيوادوالو ګډون کړی و.
مولوي ذبيح الله مجاهد وويل، د اوسپنيزي کرښي له لاري به افغانستان، له نړۍ سره وصل کېږي، هغه د اوسپنيزي کرښي د ۴مخ

## د جهادي ارزښتونو عمومي رياست په رسمي ډول فعاليت پيل کړ

د اطلاعات او فرهنګ وزارت اړوند، د جهادي ارزښتونو عمومي رياست د جهادي موزيم، آرشيف او کتابتون چاري د يکشنبې په ورځ په رسمي ډول پيل سوې.
د ياد وزارت سرپرست ملا خير الله خيرخواه په دې اړه جوړ سوو مراسمو کي د وينا پرمهال وويل، هغه مجاهدين چي د اشغالګرو په وړاندي يې خپل سرونه نذرانه ۴مخ

## کندهار والي شاولي کوټ ولسوالۍ ته ولاړی

د کندهار ولايت مقام څخه په خپره سوې اعلاميه کي راغلي، ګډون له پاره يادي ولسوالۍ ته ولاړی.
چي د کندهار والي ملا شېرين اخند شاولي کوټ ولسوالۍ ته په يوه جوړه سوې ولسي غونډه کي د په ياده غونډه کي د حج او اوقاف رياست رئيس شيخ مولوي عبدالبصير فائز، د امنيې ۴مخ

## په اطلاعات او فرهنګ رياست کي د نبوي سيرت سيالۍ آزموينه واخيستل سوه

د کندهار د اطلاعات او فرهنګ رياست اړوند، د ځوانانو چارو آمريت آمر مولوي حزب الله محمود ويلي، په دې سيالۍ کي ۲۲۰ تنو ځوانانو ګډون کړی و.
د هغه په قول، د سيرت دغه سيالي د ځوانانو چارو آمريت له خوا د الرباط علمي او فرهنګي اداري سره په همږغۍ جوړه سوې وه، چي د دې سيالۍ څخه يې هدف ځوانان د نبي کريم (صلى الله عليه وسلم) د مبارک ژوندانه څخه خبرېدل و. ۴مخ

## له پاکستانه ۲۱ مهاجري کورنۍ هيواد ته راستنې سوې

د کندهار ولايت د تخته پل ولسوالۍ اړوند، په انځرګي کمپ کي، د کډوالو د ثبت او تثبيت کمېټې مسئولينو باختر خبري آژانس ته ويلي، د دوشنبې په ورځ ۷ کورنۍ چي د کسانو شمېر يې ۳۸ تنه او ۸ تنه زنداني مهاجر، خپل هيواد ته راستانه سول.
د کندهار ولايت د تخته پل ولسوالۍ اړوند، په انځرګي کمپ کي د کډوالو د ثبت او تثبيت کمېټې ۴مخ

## د بې کيفيته غوښو د قاچاق مخه نيول سوې ده

د کرهني، اوبو لګولو او مالدارۍ رياست وياند محمد حنيف حقمل ويلي، د ياد رياست مسئولينو او امنيتي ځواکونو په ګډه، په روان ۱۴۰۳ ل کال کي د سپين بولدک ولسوالۍ اړوند، د فرضي کرښي له لاري، د ۵,۲ ټنه بې هويته د، خرابي او بې کيفيته غوښو د قاچاق مخه نيولې ده.
په نيول سوو غوښو کي د پسونو، چرګانو او غوايانو خرابه ينه هم شامله ده، چي تر نيولو وروسته، د ښاروالۍ له لوري له منځه وړل سوې ده.

## زرونه کيلوګرامه نشه ئي توکي نيول سوي دي

د کندهار د امنيې قوماندانۍ وياند ملا اسدالله جمشيد ويلي، امنيتي ځواکونو د تېري اوونۍ په جريان کي زرونه کيلو ګرامه نشه يي توکي نيولي دي.
په يادو نشه يي توکو کي ۲۱۲۳,۸۷ کيلوګرامه چرس، ۷۳۰ کيلوګرامه اومان، ۷۲ کيلوګرامه ترياک، څلور ګرامه ښيښه، ۲۳۹ عدده ټابليټ کا کولۍ شاملي دي، په تړاو يې اته تنه شکمن کسان هم نيول سوي دي. ۴مخ

## بېلابېل موضوعات

## د بشریت د لارښود صلی الله علیه وسلم عسکري ژوند

راټولوونکی: سلېمان شاه "مختار"

(اولنی لښکر کښنې په اسلام کې.)

(سيف البحر ته دحمزه رضی الله عنه لښکر کښنې.)

نېټه يې: د هجرت لومړنی کال د روژې مياشت چې د مېلادي کال د ۶۲۳ د مارچ مياشتې سره سمون خوري.

ځای يې: د عيص يو کونج د سيف البحر په نامه يو ځای چې د ينبع او مروة ترمنځ واقع دی او د سره درياب يوه څنډه ده.

د مسلمانانو قائد:

د محمد صلی الله عليه وسلم اکا امير حمزه رضی الله عنه بن عبدالمطلب.

د اسلامي لښکر تعداد:

درې سوه مهاجر سپاره مجاهدين چې هيڅ يو انصاري هم نه و ور سره، د اسلامي لښکر بيرغ د ابو مرثد الغنوي په لاس کې و، د مشرکانو لښکر چې هغوی هم درې سوه مجهز لښکر و، مشري يې ابوجهل کوله چې ټول د مکې اوسېدونکي وو، د اسلامي لښکر اراده وه چې د قريشو پر يو سوداګريز کاروان بريد وکړي، خو د سيالو ډلو ترمنځ جګړې ته خبره نه ورسېدله، د جهينه قوم د يو سردار چې مجدي بن عمرو الجهيني نومېدی، په کوښښ سره دواړې ډلې له جګړې پر ته ستنې سوې، د همدې لښکر کښنې لاسته راوړني داوې چې مسلمانانو د اسلام اساس عملي کړ چې وايي:

الله جل جلاله د قرآنکريم د سورة الانفال په (۶۱) نمبر آيت کې فرمايي:

ژباړه: که چيري دوی سولې ته مائل سول، تاسو يې هم هر کلی وکړئ، پر الله توکل کوه، يقيناً هغه اورېدونکی او ليدونکی ذات دی.

۲–مسلمانانو د سياسي خبرو له لاري کار واخيستی او د توري په ځوکه يې خلک اسلام ته پر دخول مجبور نه کړل.

۳–له هوښياری يې کار واخيستی، ځکه چې د جګړې څخه مخکې امير حمزه رضی الله عنه ته معلومه سوه چې د مشرک لښکر ځواک، تر اسلامي لښکر ډېر دی، هغه په دې معنی چې مشرک لښکر له خپلې قافلې سره يو ځای سو يا د مرستندويه لښکر امکان هم و چې وروسته ور سره يو ځای سي، خو اسلامي لښکر دا ځانګړني نه درلودې، دا فيصله نو د جګړې په ميدان کې حاضر خلک کولای سي چې څه کول په کار دي، د باندنيو خلکو ته درک نه ورکوي.

اولنی بيرغ:

ويل کيږي چې د امير حمزه رضی الله عنه بيرغ په اسلام کې اول بيرغ و، چې پورته کړل سو.

څېړونکي په دې آند دي چې محمد صلی الله عليه وسلم په يو وار حمزه بن عبدالمطلب ته او عبيده بن الحارث بن عبدالمطلب ته بيرغونه ورکړل، اوس ځيني وايي، چې اول يې حمزه رضی الله عنه ته ورکړ او ځيني وايي چې اول يې عبيده بن الحارث ته ورکړ.

## د ولس زړونه؛ همداسي خپلېږي!

حسان "مجاهد"

د حطين تر جګړې څو ورځې وړاندي سلطان صلاح الدين ايوبي (رح) په دمشق کې د پوليسو مشر (چې په اوسني وخت کې د کورنيو چارو له وزير سره برابر دی) راوغوښتی او ورته و يې ويل:

اې د پوليسو مشره! خلکو ته ږغ وکړه چې هيڅوک د خپل کور دروازه بنده نه کړي او هيڅ سوداګر دې د خپل دوکان دروازه و نه تړي.

د پوليسو افسر په دې غوښتنه حيران سو او هڅه يې وکړه چې سلطان له دې کاره پر شا کړي، خو صلاح الدين په ټينګه ورته وويل: هغه څه وکړه چې ما در ته امر کړی دی.

اعلان کوونکو چيغي وهلې چې د سلطان حکم خلکو ته ورسوي (په هغه وخت کې د دمشق نفوس تر ۱۵۰ زرو زيات و.)

بله ورځ سلطان د پوليسو افسر راوغوښتی او له هغه يې وغوښتل چې هغه څه بيا تکرار کړي چې تېره شپه يې کړي وو، په درېيمه ورځ يې بيا را وغوښتی او له هغه يې وغوښتل، هغه څه چې تېره شپه يې کړي وو، بيا تکرار کړي، ځلورمه ورځ يې ځني وپوښتل:

آيا تاسو ته د کومي غلا په اړه راپور در کړل سوی؟ هغه جواب ورکړ: نه!

دلته صلاح الدين د لښکر قوماندانو ته چې په شورا کې ول، وويل:

اوس د جګړې د پيلولو له پاره عام اعلان وکړه! که ماته د غلا يو خبر راکړل سوی وای، جګړه به مي لس کاله ځنډولې وای.

دا د صلاح الدين ايوبي (رح) يو تاکتيک و، چې خلک پر ځان باوري کړي، د هغوی زړونه خپل کړي او په ولس کې مشروعيت تر لاسه کړي، تر څو ولس يې تر څنګ ودرېږي او په هره ستونزه کې اوږه ورکړي.

## د سلواغې ۲۶؛ د افغان ولس د بريا او شوروي يرغلګرو د ماتې ورځ!

صابر جان "محصل"

د افغانستان وياړمن تاريخ؛ د قربانيو، زړورتيا او خپلواکۍ غوښتني له حماسو ډک دی. افغانان تل د آزادۍ پر لاره د سترو زبرځواکونو په وړاندې درېدلي، د خپل دين، ناموس، ارزښتونو او د خاوري ساتني له پاره يې نه ستړې کېدونکې مبارزه کړې ده.

د سلواغې ۲۶مه يا د (فبرورۍ ۱۵مه، ۱۹۸۹م) هم د همدې ملي مقاومت يوه ځلانده پاڼه ده، هغه ورځ چې د شوروي اتحاد يرغلګر ځواکونه له افغانستانه په ټيټو سترګو ووتل او زموږ ملت ته يې د خپلواکۍ يوه بله زرينه بريا ور په برخه کړه.

د ۱۳۵۸ل کال د مرغومي پر شپږمه، شوروي اتحاد پر افغانستان يرغل وکړ، د خلق او پرچم کمونيستي حکومت يې په زور وساتی او زموږ خاوره يې د خپلو ګټو له پاره د جګړې ډګر وګرځوله، خو دا يرغل افغانانو ته د منلو نه و. له لومړۍ ورځې زموږ مؤمن ولس د دې استعماري ښامار پر ضد وسلې ته لاس کړ، د روسانو او د هغوی د ګوډاګيو خلقيانو او پرچميانو په وړاندې يې نه ماتېدونکی مقاومت پيل کړ.

افغان مجاهدين چې د ديني عالمانو، روحانيونو او قومي مشرانو په مشرۍ يې د يرغلګرو پر ضد سنګرونه نيولي وو، افغان ولس په خپل ايماني قوت او جذبې سره داسي قربانۍ ورکړې چې د نړۍ تاريخ ورته بېلګه نه لري.

د دوو ميليونو افغانانو سرونه د دې جګړې قرباني سول، خو په قربانيو سره نه يوازې دا چې افغانان مات نه سول، بلکې هره ورځ يې پر يرغلګرو بريدونه زياتېدل، څو يې بالاخره روسان دې ته اړ کړل چې له افغانستانه د وتلو پرېکړه وکړي.

د شوروي اشغال پر مهال د افغانستان په بېلابېلو سيمو کې خونړۍ جګړې وسوې. د هرات پاڅون (۱۳۵۸)، د کنړ، پکتيا، پنجشېر او کندهار جګړې او د کابل پر سنګرونو بېلابېل بريدونه، د مجاهدينو د مقاومت څرګندې بېلګې دي. د افغانانو زړورتيا او سربښندنه وه، چې د نړۍ ستر زبرځواک ته يې تاريخي ماته ورکړه.

په همدې لړ کې د روسانو ستر جنګي ماشين ته درونه مالي او بشري زيان واوښتی، د هغوی زړونه سرتېري ووژل سول او پای يې د ۱۳۶۷ل کال د دلو مياشتې پر ۲۶مه نېټه، خپل وروستی سرتېری، له افغانستانه د حيرتان بندر له لاري وايستی. دا هغه ورځ وه چې د افغانانو څه کم تر ۱۰ کلني قربانۍ وروسته، د شوروي يرغل ته د پای ټکی کښېښوول سو.

د تاريخ پاڼې شاهدي دي چې افغانستان د زبرځواکونو هديره ده. د شوروي اتحاد ماته يوازې د روسانو له پاره نه، بلکې د هر استعماري ځواک له پاره يو روښانه پيغام دی چې افغانان غلامي نه مني، د پرديو تپل سوې ايډيالوژي نه مني او هيڅوک نه سي کولای چې د افغانانو آزادي سلب کړي.

هر هغه څوک چې د دې خاوري د اشغال خوب ويني، بايد د مغرور شوروي اتحاد برخليک ته وګوري. بايد پوه سي چې د دې ولس ايماني قوت، د آزادۍ مينه او د خپلواکۍ تنده به هيڅکله ماته و نه مني. که شوروي اتحاد نن د تاريخ يوه ماته امپراتوري يادېږي، که بريتانوي استعمار دلته سپک سو، که ۲۰۲۱م کال کې بل زبرځواک (امريکا–ناټو) هم د شرم له دروازې ووتی، دا ټول يو حقيقت ثابتوي: چې افغانستان ته راتګ اسانه، خو وتل ځني يرغلګرو ته په درانه قيمت او ماته تمام سوي دي.

د دلو ۲۶ يوازې د شوروي يرغل د پای نېټه نه ده، بلکې دا ورځ د هغو ټولو غلامانو، وطن پلورونکو او اجيرانو له پاره يو ستر درس او عبرت دی، چې د پرديو په چوپړ کې خپل دين، ناموس او هيواد خرڅوي.

د ګوډاګيو ژوند ذلت او تباهي وي. خلقيان او پرچميان چې د شوروي يرغلګرو مزدوران ول، فکر يې کاوه چې د روسي ټانکونو په زور به، د افغان ولس روح تسخير کړي. دوی د کمونيزم په نامه؛ د اسلام، افغاني غيرت او دوديزو ارزښتونو پر ضد، جنايتونه وکړل، مګر پايله يې څه سوه؟ د دلو ۲۶مه يې د ذلت او رسوايي ورځ سوه.

روسانو دوی يوازې پرې ښوول، دوی د کډوالۍ او د ذلت له برخليک سره مخ سول.

د دلو ۲۶مه يوازې د افغانستان له پاره نه، بلکې د نړۍ د ټولو آزادو ملتونو له پاره يوه مهمه ورځ ده، چې د آزادۍ، مبارزې او د ظالم په وړاندي د نه تسليمېدو ستر درس ورکوي. دا ورځ موږ ته دا راښيي چې که ملتونه پر خپل ايمان، توکل او ملي يووالي ولاړ وي، نو هيڅ زبرځواک يې نه سي غلام کولای.

د سلواغې يا دلو ۲۶مه موږ ته دا درس راکوي، چې خپلواکۍ ته رسېدل ممکن دي، خو ساتل يې تر لاس ته راوړلو ډېر مهم دي. افغان ولس بايد تل د دې ورځې ارزښت وساتي، د خپلواکۍ اتلان ياد کړي او هيڅکله د پرديو د غلامۍ ځنځيرونه و نه مني.

لله الحمد په هيواد کې دغه د بريا ورځ داسي مهال لمانځل کيږي چې هيواد مو له پشپړې آزادۍ او د شرعي اسلامي نظام له اقامې برخمن دی.

دا ورځ دې د نړۍ ټولو آزادو ملتونو او خصوصاً افغان غيور ولس ته مبارکه وي.

## اخلاص

ژباړه: سميع الله "دراني"

اخلاص يعني د نيت صفاوالی. دغه د نيت صفاوالی له الله جل جلاله سره هم کيږي او له بنده ګانو سره هم.

له الله جل جلاله سره د نيت صفاوالی داسي کيږي، چې انسان هر نيک عمل کوي، په هغه کې يې صرف د الله جل جلاله رضا مقصد وي، بل نيت يې نه وي. له بنده ګانو سره د اخلاص مقصد دادی، چې انسان د ټولو مسلمانانو خير غوښتونکی وي، د هيچا شر نه غواړي. د الله جل جلاله له پاره چې کوم عملونه کيږي، په هغو کې د نيت خالص والی ښېخي ضروري دی، ځکه نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمايي:

د هر عمل قبوليت په نيت پوري اړه لري.

په بل روايت کې راغلي دي:

تاسو چې هر کار په کوم نيت کوی، هغه به حاصل کړی.

يعني که مو د مال، دولت او د شهرت له پاره جهاد کاوه، دا به هم حاصل کړی. له انسانانو سره خلوص کول، نبي کريم صلی الله عليه وسلم په خير غوښتلو باندي تعبير کړی دی. هغه مشهور حديث دی، چې الدين النصيحة. يعني دين ټوله خير غوښتنه ده، که چا د بل مسلمان خير نه غوښتی، هغه به په دنيا کې هم ذليل وي او په آخرت کې به الله پاک سخته سزا ورکړي.

موږ د هر چا څخه غواړو، چې له مسلمانانو سره خيرخواهي وکړي. دغه ډول له نورو هم زموږ څخه دا اميد دی، چې موږ له دوی سره خيرخواهي وکړو.

# د شیطان لښکر

خوښونه: شهید شیخ رحیم الله "حقاني"

(۱۰۸) برخه

## د خوارجو نوې څېره (داعش)

د ګناهونو په هکله د خپلو ملګرو او نورو خلکو توپیر کوي. کعبي له نجدات څخه نقل کوي: تقیه (خپل ځان ساتل کول) عملي او قولي دواړه ډوله روا ده.

او وایي: نجدات پر دې اتفاق کړی چې خلکو ته د امام ضرورت نسته، کله چې خلک له یو او بل سره انصاف کوي او که دا کار له امام پرته نه کېدی، نو بیا یو څوک امام جوړول جایز دي.

څلورمه ډله: البیهسیة:

دا ډله د خپل مشر ابو بیهس الهیصم بن جابر لوري ته منسوبه ده، دا ابو بیهس د حجاج بن یوسف په زمانه کې و، د مدینې منورې د والي عثمان بن حیان المري له لوري ونیول سو، لومړی یې پښې او لاسونه ور څخه پرې کړل او بیا یې وواژه.

د البیهسیة عقاید:

لومړی عقیده:

ایمان د علم، اقرار او عمل درې واړو مجموعه ده.

دوهمه عقیده:

د دوی څخه یوه ډله وایي: حرام شیان یوازې په دې آیت کې بیان سوي دي:

ژباړه: ووایه! زه په هغه وحیې کې چې ماته سوې ده، نه مومم کوم حرام شی چې په خوړونکي باندې حرام کړل سوی وي، مګر دا چې مرداره وي، یا بهیدلې وینه وي، یا د خنزیر غوښه وي، ځکه چې د خنزیر غوښه ناپاکه ده، یا هغه ذبیحه وي چې له الله تعالی پرته، د بل چا نوم پر اخیستل سوی وي، څوک چې له لوږې مجبور سو، په داسې حال کې چې نه نافرمان وي او نه (په خوراک کې د ضرورت) له حد څخه تجاوز کوونکی، نو ستا رب بخښونکی او مهربان دی.

له دې شیانو پرته هیڅ شی هم حرام نه دی.

بیا خپله په بیهسیانو کې یوه ډله ده: عونیه چې هغه هم پر دوو ډلو وېشل سوې ده:

لومړی ډله: څوک چې هجرت وکړي او خپل پخواني کور ته ولاړ سي، نو موږ د هغوی څخه بېزار یو، ځکه چې هغه د دین څخه ووتل.

دوهمه ډله وایي: موږ له هغوی سره دوستي او اړیکي ساتو، ځکه چې هغوی داسې کار کړی چې د دوی له پاره روا و.

او دا دواړې ډلې په اتفاق سره وایي: که امام کافر سي، نو رعیت ټول په ټول کافر کېږي، که حاضر وي او که غائب.

پنځمه ډله العجاردة:

دا د عبدالکریم بن العجرد پیروي کوونکي دي، دوی د نجدات له خوارجو سره په ټولو بدو عادتونو کې متفق دي، ځیني وایي: عبدالکریم د بیهس ملګری و، بیا له هغه سره په دې خبره مخالف سو: ماشوم چې تر څو د اسلام دعوت نه وي ورکړل سوی له هغه نه بېزاري واجب ده، ځکه چې د بلوغ پورې د دین او اسلام اهل نه دي.

د عجارده عقائد:

لومړی عقیده:

د کفارو بچیان به له هغوی سره یو ځای جهنم ته ځي.

دوهمه عقیده: د څښتن له وژلو وړاندې د هغه مال غنیمت نه بلل کېږي.

درېیمه عقیده:

پر کور ناست له دیندارو خلکو سره او د دوی پر طرف، له هجرت کوونکو سره دوستي او اړیکي ساتل روا دي.

څلورمه عقیده:

هجرت یو ښه عمل دی، خو واجب نه دی.

پنځمه عقیده:

د لویې ګناه کوونکی کافر دی.

شپږمه عقیده: سورة یوسف د قرآنکریم برخه نه ده، د عاشقانو کیسه ده او قرآنکریم د عشق داستان نه دی. العیاذ بالله!

شپږمه ډله – الثعالبة:

دا د ثعلبه بن عامر ملګري دي، په پیل کې د عبدالکریم بن العجرد ملګري وو، تر دې چې ثعلبه د ماشومانو په حق کې وایي: موږ له ورو سره په ماشومتوب او سپین ږیرتوب کې اړیکي ساتل روا ګڼو، تر څو چې موږ په دوی د حق څخه انکار او ظلم و نه وینو، نو په دې مسئله کې یې له عجارده څخه بېزاري اعلان کړه، په نورو خرافاتو او اپلتو کې د ثعلبه او عجارده هیڅ توپیر نسته.

اوومه ډله – الاباضیة:

دا هم خپل مشر عبدالله بن اباض التمیمي ته منسوب ده، په ۱۳۰ هـ کال کې د مروان بن محمد الاموي په خلافت کې په حجاز کې راووت.

د اباضیه عقاید:

لومړی عقیده: زموږ مخالف اهل قبله غیر مشرک کافر دي، نکاح ور سره روا ده، د هغوی میراث حلال دی.

دوهمه عقیده: په جنګ کې د هغوی وسله او آسان غنیمت حسابېږي، نور مالونه یې حرام دي.

نور بیا...

# هیمانجیومای دوره شیر خواره گی

عبدالنسیم "صدیقی"

حصه اول

سریزه:

تعرف و نامگذاری:

هیمانجیومای دوره شیرخواره گی یک تومور خیلی معمول سلیم و عالی است، که در ابتدای دوره شیرخواره گی بوجود آمده و خود به خود فروکش میکند.

اسم مترادف آن Haemangioma of infancy میباشد. نظر به تاریخچه طبیعی رشد آن درچند ماه اول حیات شروع شده و در جریان چند سال دوباره فروکش میکند. اکثرًا بدون گذاشتن عوارض خاصی بهبود یافته، اما تداوی در واقعات که سبب یا احتمالاً سبب اختلال عملکرد، تغیر شکل و یا زخم میگردد، استطباب دارد.

هیمانجیومای قطعه – قطعه ای یا پلک مانند در رأس، گردن و ناحیه کمر ممکن بااختلالات ساختارهای داخلی همرا باشد.

نوع هیمانجیومای چندین نقطوی معمولاً بدون اعراض بوده، اما گاهی ممکن است، بامصابیت وسیع احشاء داخلی همراباشد. از نظر کلینیک هیمانجیومای ولادی سریعًا فروکش کننده یا Rapidly involuting congenital haemangiomas (RICH)، non-involuting congenital haemangiomas (NICH)، و partially involuting congenital haemangiomas (PICH) ازهنجیومای شیرخواره گی فرق دارد و به نظر میرسد، که رشد خود را در داخل رحم تکمیل نموده است.

اپیدیمولوژی Epidemiology:

هیمانجومای دوره شیرخواره گی معمولترین تومور این دوره میباشد، که تا 4–5% در شیرخواران اتفاق می افتد، معمولاً دختران را نسبت به پسرها بیشتر مصاب میسازد، که نسبت مصابیت زن ومرد 1:2,5 میباشد. اکثر واقعات بصورت پراگنده است. طوریکه معلوم میشود Amniocentesis، القاح داخل رحمی، breech presentation، طفل اول باری و کاهش وزن (کمتراز 2500 گرام) همگی بصورت مستقلانه در پیشرفت هیمانجیومای دوره شیرخواره گی دخیل است[1].

هیمانجیومای شیرخواره گی زیادتر درنژاد قفقازی نظر به دیگر نژادها اتفادق می افتد، اما این تمایل بصورت مشاهده نشده است.

هیمانجیومای شیرخواره گی همچنان دراطفال قبل المیعاد نسبت به اطفال نورمال بیشتر اتفاق می افتد، 23–30% در اطفال که وزن کمتر از g1000 دارد و 15% در اطفال که بین g1000و g1500 وزن دارد، اتفاق می افتد. این حالت در اطفال که به تعقیب نمونه گیری از ویلی های کوریون در زمان جنینی متولد شده اند، درمقایسه به اطفال که به تعقیب امیونوسنتیزو یا اطفال که بدون تجهیزات متولد شده اند، سه چند افزایش میابد. اطفال که هیمانجیوما دارند به احتمال زیاد مؤنث، قفقازی، کم وزن، قبل المیعاد، متولد از مادران که چندین حمل گرفته اند وازمادران مسن متولد شده میباشد[2].

وقوعات هیمانجیومای شیرخواره گی بصورت پراگنده میباشد.

درمجموع پیداکردن آمار دقیق این مرض در فامیل ها و جمعیت کاری دشواری است[2].

تظاهرات کلینیکی:

هیمانجیوما ممکن است، بزودی بعد از تولد به شکل یک قطعه telangiectatic ضفیف یا به شکل یک ناحیه خاسف، یا به شکل یک علامت هموار گلابی رنگ که ممکن است بزودی سرخ رنگ و برجسته شود آشکار گردد. اشکال سطحی (Superfcial) هیمانجیومای شیرخواره گی بیشترین رشد رادربین هفته های 5.5 و 7.5 حیات از خود نشان میدهد.

هیمانجیومای عمیق که در قسمت های سفلی طبقه درم و تحت جلد توسعه می یابد، تمایل دارد، که به شکل آبی یا ارغوانی تظاهر یابد، ممکن است هیچ تغیرات جلدی در ناحیه مصاب دیده نشود، اکثرًا بصورت مؤخر بوجود آمده و رشد آن نسبت به هیمانجیومای سطحی بیشتر دوام میکند. بدون در نظر گرفتن نوع و یا عمق، اکثر hemangiomas نوزادان تا 3 ماهگی به 80% از اندازه نهایی خود می رسند. در infantile haemangiomas های مختلط هم خصوصیات نوع superficial و هم خصوصیات نوع عمیق معمولاً میباشد. یک تعداد کم از infantile haemangiomas ها به حیث abortive infantile haemangioma شناخته میشود، که proliferation کمی از خود نشان داده، به شکل یک patch of telangiectatic vessels باقی می ماند. درجریان مرحله تکثری، infantile haemangiomas سخت میباشد. با کاهش تومور نرم تر میگردد. infantile haemangiomas سطحی به شکل جزایر خاکستری در بین سرخی همرابا هموار شده گی سطح آن توسعه میابد. در اندفاعات تداوی ناشده، برگشت به حالت نورمال در نیمه های سال سوم حیات تکمیل میشود و اکثر واقعات بطور چشم گیری بعد از 3.5 سالگی بهبود میابد.

بنا براین اصلاح کردن توسط جراحی در صورت که استطباب داشته باشد و به خاطر عواقب زیبای که امکان بهبودی خود به خودی نباشد، ممکن است، درین مرحله سنی به بهترین وجه اجراء شود. تغیرات دایمی اکثراً به تلانجیکتازیا، اتروفی و توده های برجسته جلدی میباشد، که در اشکال انساج fibrofatty تا 69% واقعات تداوی نشده اند، گذارش شده است. به تعقیب ندبه های فرورفته اکثراً زخم ها بوجود می آید.

ادامه دارد...

شعر او آدب

# د طلوع زرینې وړانګې

## غزل

احمد "بریالی"

چې پرې راغلي وي هغه پرې خامخا راځي
پروړکه لاره د کاروان وګړي بیا راځي

* * *

له خپل ملګرو د زمان کله پوښتنه نه کړي
وي کلی کور پرې ناخبره چې تنها راځي

* * *

پوره حساب د ژوندانه غواړي له هر وګړي
که د دنیا بازار ته هر سړی وړیا راځي

* * *

د ژوندانه پر حال وي همګي ماړه ځني خو
په مرګي حال ورته حاضر همه دنیا راځي

* * *

له سرنوشته د سبا له حاله نه پوښتي دا
پر سترې حال د سړیتوب راته سودا راځي

* * *

د سخاوت وریې ترلی پر غریب وي مګر
و دولتمن ته د ازمون مال په سخا راځي

* * *

د امتحان موده تمدید تر ژوندانه سي ځکه
د کردګار چیري پر چا باندي پروا راځي

* * *

چې انتخاب فروتني کړي "بریالی احمده!"
پر هغه نیت په ژوندانه کې استعلا راځي

## غزل

نوراحمد "قرآن مل"

پري مخو مو تخار په مخه واخیست
د بخدي تاریخ مزار په مخه واخیست

* * *

لعل د شونډو بدخشي پرو خیرات کړل
هر یو ښکلي مو فرخار په مخه واخیست

* * *

د مېړانې او همت درم یې ږغېږي
ننګیالیو کندهار په مخه واخیست

* * *

زړه کوکب د دې هیواد کابل ځلېږي
د باګرام درو ایثار په مخه واخیست

* * *

د هرات د تمدن فرهنګي ځاله
د بادغیس ښکلا قیصار په مخه واخیست

* * *

پکتیکا سوه قرباني هیواد وطن ته
خوست ګردېز مو دا شعار په مخه واخیست

* * *

د کنړ د پېچ تاب درو سرو څه
کشمیرخان یې ټول اغیار په مخه واخیست

* * *

نورستان د ملي پارک په ننداره کې
هر لغمان هر شین ګلزار په مخه واخیست

* * *

د پنجشېر د زمرودو وراوي پلني
هر زلمی مرغ زار په مخه واخیست

* * *

د پروان نغمه تګاب درو خپره کړه
ویاړ صبور فرید کوهسار په مخه واخیست

* * *

غزنوي محمود د ډاډ سندره وایي
خړ زابل مو ستر یادګار په مخه واخیست

* * *

د هلمند یاغي څپو مځکه خړوب کړه
چې د غور جام مو منار په مخه واخیست

* * *

راسه راز د ننداري د سرپل کړه!
د کندز ایمان اظهار په مخه واخیست

* * *

تر فراه نیمروز قربان د پاریس حوري
د جوزجان رنګ مو نګار به مخه واخیست

* * *

د جمشید د تاریخي تخت سمنګان ته
د بامیان بت شرمسار په مخه واخیست

* * *

د نیمروز د طلایي ریګو تاریخ کې
هر سر شوخ ته یې یلغار په مخه واخیست

* * *

د قرآن د پلوشو په رنګینیو
"قرآن مل" مو رون سهار په مخه واخیست

Toto E Afghan Journal

طلوع افغان مدیریت له ټاکلي لیکنیز معیار سره سم، د لیکنو په اصلاح کې د لاسوهني حق لري.

ګرانو لوستونکو! په ډېر احترام هیله کېږي، چې دا سپېڅلي پاڼي بې ځایه و نه غورځوئ!

## د ګڼون کوونکو له پاره خبرتیا!

د طلوع افغان تاریخي خپرونه چې د هیواد په مطبوعاتي تاریخ کې ځانګړی ځای لري. که غواړئ چې د لمریز کال په آخرکي د طلوع افغان تاریخي ورځپاني یو بشپړ کلکسیون ولرئ، نو په طلوع افغان ورځپانه کي ګڼون وکړئ.

د ګـڼون کلنی بیـه ۵۰۰- پنځـه سـوه افغـانی، زده کوونکـو او محصلینو تـه د تصدیق پـه وړانـدي کولـو سره نیمـه بیـه ټاکل سوې ده.

اداره

مســـــــئول مــــدیر : ـــــــ بـریـالــی "فیـضـي"
د تصــحیح مسئــــول : ـــــــ حاجي عبدالله "ذاکري"
کمـــپوز او ډیــــزاین : ـــــــ نصیر احمـد "صــابر"
د مـــــــدیریت شمېره : ـــــــ ۰۷۰۵۶۰۸۶۷۳
د توزیع مدیریت شمېره : ـــــــ ۰۷۰۰۴۹۱۴۳۶
پتـــه : ـــــــ علامه حبیبي واټ – اطلاعات او فرهنګ ریاست
د برېښنالیک پته : ـــــــ Afghan.tolo@yahoo.com

Founded in 1921 — ISSue: 71 — Established in 1300 Hijri

# اعلانونه او خبرتیاوي

## زیاتوونکي غواړي

کلینیک معالجوی سیال (D-31961) شمېرې جواز درلودونکی چې رئیس یې نجیب الله "نیازی" د حاجي عصمت الله زوی او مرستیال یې عبدالواحد "وثیق" د حاجي محمد ابراهیم زوی دی، ورک سوی، د اعلان تر نشر وروسته اعتبار نه لري.

## د ورکي اعلان

څه وخت وړاندي د عینو مېني د ملکیت یو سند چې د مارېې د حاجي عبدالرحمن د لور په نامه دی، د ملکیت نمبر یې (201)، موقعیت یې (D2-17) او د فایل نمبر یې (12680) دی، ورک سوی. هر چا که پیداکړی وي، د افکو کمپنۍ د فروشاتو دفتر ته دې ور وړي او یا دې د ټیلیفون په دې شمېرو تماس و نیسي: 0700305088 -0700000373

**(۱) مخ پاته: د کندهار –هرات د اوسپني...**

اساسي ګټـو پـه اړه وویـل، د دې لاري بـه افغانسـتان د ترانزیټي هیـواد پـه توګـه، لـه منځنۍ آسیا او جنوبي آسیا سره نښلوي، د وارداتـو او صـادراتو مصـارف بـه کمېږي او د تجارت په برخه کي به د هیوادونـو تـرمنځ، سالمه سیالي زیاتېږي.

مجاهـد زیاتـه کـړه، د یـو هیـواد اقتصـادي بیارغونه، د نورو هیوادونو په کومکونو نـه، بلکـي د هغـه هیـواد د عوایـدو پـه مرسـته کیږي، هغه په تېر کي د شوروي اتحاد او د امریکا د یرغلونو پـر مهال، کومکونـو تـه پـه اشارې سره وویل، د هغوی په کومکونو سره په هیواد کي اساسي او بنسټیز کار نـه دی سوی.

الحـاج مولـوي محمـد اسـحاق صـاحبزاده وویل، د اوسپني پټلي د تفصیلي سروې او ډیزاین چـاري پـه پنځـو لاټونـو کـي د درو شرکتونو له لاري سر ته رسېږي.

د هغه په قول، د افغانستان د اوسپني پټلۍ اداره د ټولي نړۍ د اوسپني د پټلیو لـه ادارو سره رسمي غړیتوب لري.

صاحبزاده د خپلي وینا پـه یـوه برخـه کـي د اوسپنیزي کرښي د ارزښت پـه اړه وویـل: "دا پـروژه ځکـه د حیـاتي ارزښـت ترڅنـګ، اقتصـادي او تجـارتي ارزښـت لـري، چـي د افغانسـتان د اوسـپني پټلـۍ شـبکې پـه پراخــوالي، د ســوداګریزو لګښــتونو پــر کمښت، د صادراتو او وارداتو په برخه کي د لازمو اسانتیاوو په رامنځته کولو، د هـرات، فراه، هلمنـد او کنـدهار ولایتونـو تـرمنځ، د ترانسپورټي اسانتیاوو پر زیاتوالي، د هیـواد اقتصادي ودي ته د قوي زېربنا پـر جوړولـو سر ېبره، سوونو هیوادوالو تـه کـاري زمینـه هم برابروي."

پـه دې مراسـمو کـي د سـوداګرۍ خـوني رئـیس حـاجي محمـد صـدیق مهمنـد د اسـلامي امـارت څخـه منـنه وکـړه، چـي پـه هیواد کي یې بنسټیزي پروژې رواني کـړي او د دې بنسټیزو پروژو له لاري د افغانستان آبـادي شـروع سـي او د اسـلامي امـارت د مسئولینو څخه یې مننه وکړه، چـي د ملـي سـوداګرو هـر وړانـدیز تـه یـې مثبـت جـواب ورکړی دی.

د هسک انجینري خدمتونو شرکت انجینر آغاګل شاهد له باختر خبري آژانـس سـره د مرکـې پـر مهـال وویـل، د هـرات څخـه تـر کندهار پوري د ۵,۷۳۷ کېلو متره د اوسپني پټلۍ د تفصیلي سروې او ډیزاین چـاري پـر پنځو لاټونو وېشل سوي دي.

د شـاهد پـه خبـره، اول لاټ یـې د هـرات ولایت تر شنډنډ ولسوالۍ، دوهم لاټ یې د شـنډنډ څخـه تـر فـراه ولایـت پـوري، درېیم لاټ یې د فراه څخـه د نیمـروز تـر غور غوري ولسوالۍ پوري، څلورم لاټ یې د غـور غـوري ولسـوالۍ څخـه د هلمنـد تـر لښکرګاه پوري او پنځم لاټ یـې د هلمنـد ولایت د لښکرګاه څخه تر کندهار پوري دي، چـي د ټولګټـو چـارو وزارت پـه ۲۶۵ میلیونو افغانیو، د اتو میاشتو په موده کي یې د تفصیلي سروې او ډیزاین چاري سر ته رسېږي.

شـاهد زیاتـه کـړه، د دې پـروژې د تفصـیلي سروې او ډیزاین په چارو کي په فنـي او غیـر فني برخو کـي د ۳۰۰ څخـه تـر ۶۰۰ پوري کسانو ته کاري زمینه برابرېږي.

هغه د اوسپني پټلۍ د اهمیت په اړه وویـل، لـه دې لاري افغانسـتان، لـه لوېـدیځي او منځنۍ آسیا سره وصل کېږي او د منځنـۍ آسیا هیوادونه به د جنوبي آسیا له هیوادونو سره د افغانستان له لاري وصل کېږي، چي پـه مرسـته بـه یـې د افغانسـتان صـادرات او واردات زیـات او هغـه هیوادونـه چـي خپـل ترانزیټـي مالونــه لــه دې لاري لېـږدوي، افغانستان ته به د ترانزیټ پیسې ورکوي.

د یادوني وړ ده، چي په هیواد کي د اسلامي امارت په بیا واکمنیدو سره د لویو بنسـټیزو پروژو د جوړولو چاري په چټکۍ سره رواني دي، چي د هغې جملې څخه لویه پـروژه، د قوش تېپې کانال بلل کېږي.

**(۱) مخ پاته: کندهار والي شولي کوټ...**

قومانـدانۍ اړونـد، د جنـایي جرمونـو پـه وړانـدي د مبـارزې مـدیر مولـوي فضـل الحق شاکر، د ارغنداو، نېش، میانشین، خاکرېز، دامان، کښته او لوړ شاولي کوټ ولســوالیو ولســوالانو، قومانــدانانو، د استخباراتو مسئولینو، سپین ږیرو او عامو خلکو ګډون درلودی.

کندهار والي د غونډې ګډونوالو ته وویل، دا نظام په ډېرو قربانیو او تکلیفونو سره حـاکم سـوی، مـوږ او تاسـو ټـول بایـد را سپارل سوي مسئولیتونه په ښه توګه تـر سره کړو او د دې ځوړېدلي ولس خـدمت وکـړو او همـداراز یـې لـه ټولـو راغلـو مسئولینو غوښتنه وکـړه چـي د نشـه یـي توکو د قاچاق، پېر او پلور پـه اړه، بایـد د شیخ صاحب حفظـه الله حکـم پـه بشـپړه توګه عملي کړئ.

همداراز مولوي عبدالبصیر فائز، مولوي فضـل الحـق شـاکر او نـورو علمـاوو د شرعي نظام پر ارزښت، تقوا، د مشرانو پـر اطاعـت، د نظـام څخـه د ملاتـړ، همکــــارۍ او د ورســــپارل ســــوو مسئولیتونو د ښه تر سره کولو په اړه هر اړخیـزي ویناوي وکـړې او هـم یـې لـه مسئولینو او عامو خلکو څخـه غوښـتنه وکړه، چي د نشه یي توکو په مخنیـوي کــي خپلــي هڅـــي او کوښښــونه و نــه سپموي.

**(۱) مخ پاته: د نبوي سیرت سیالۍ...**

محمـود زیاتـه کـړه، د دې سـیالۍ ممتـازو ګډونوالو ته د ځوانانو چارو آمریت له خوا په جایزو کـي کمپیوټر، بایسکل، ټیلیفـون، ساعت او نغدي پیسې شاملې وې.

د یادوني وړ ده، چـي څـه مـوده مخکـي هم د ځوانـانو چـارو آمریـت، لـه الرباط علمــي او فرهنګــي اداري ســره پــه همږغۍ، په کندهار زندان کي د نبـوي سیرت سیالي جوړه کړې وه.

**(۱) مخ پاته: د جهادي ارزښتونو...**

کـړي او قربـانۍ یـې ورکـړي، د ولـس اتلان دي او د هغوی د کارنامو راټولول، خوندي کول او راتلـونکي نسـل تـه یـې رسول، د اسلامي امارت مسئولیت او د خلکو غوښتنه ده.

د هغـه پـه قـول، یـاد ریاسـت بایـد د شهیدانو د سربښندنو او کارنامو د کیسو او سوانحو په راټولولو کي د بې پرې توب اصـل تـه جـدي پاملرنـه وکـړي او دغـه تاریخ له کوم کمښت او زیاتوني پرتـه، کــټ مــټ راټــول او خونــدي کــړي.

هغه همدارنګه ډاډ ورکړ، چي د جهادي ارزښتونو ساتني عمومي ریاست له پاره له پوره غور او دقت وروسته وړ، مسلکي او ژمن کسان ګمارل سوي او وزارت به دغه ریاسـت تـه د امکاناتو برابرولـو لـه پاره خپلي هڅي دریغ نه کړي.

په ورته وخت کي د اطلاعات او فرهنګ وزارت د خپرونـو چـارو معـین مولـوي مهاجر فراهي ویلي، د اشغال پر مهـال، دلته په شته کرغېړنو زندانونو کي د تر سـره سـوو ظلمونـو د مسـتند کولـو پـه موخه کار روان دی.

هغـه لـه ټولـو ډلګـۍ مشـرانو غوښـتنه وکـړه، چـي د شـهیدانو د سـوانحو او د هغـوی د سربښـندنو د رښـتینو کیسـو راټولولو په برخه کي همکاري وکړي.

د هغه په خبره، افغان مجاهدینو په تش لاس، په هر ډول عصري وسلو د سمبالو یرغلګرو په وړاندي کلکه مبارزه وکړه او په دې لاره کـي یـې بـې سـارې قربـانۍ ورکـړي او څرګنـده یـې کـړه، د افغـان مجاهدینو د دغه سربښندنو او قربانیو د قدردانۍ، خوندیتوب او راتلونکي نسل ته یـې د رسـولو پـه موخـه دغـه ریاسـت منظور سوی او دمګړۍ یې چاري ښـې رواني دي.

پـه همـدې حـال کـي د اطلاعـات او فرهنګ وزارت د فرهنګ او هنـر معـین مولوي عتیـق الله عزیـزي ویلـي، افغـان مجاهــدینو د شــوروي یرغلګــرو پــه وړانـدي تـر واحـد شعار او چتـر لانـدي سـپېڅلي جهـاد وکـړ او بریـا یـې خپلـه کـړه، خـو وروسـته د ځینـو مشـرانو د خپلمنځي شخړو له کبله ګڼي ستونزي رامنځته سوې او دغه سپېڅلی صف یې د ژبې، سمت او قـوم پـه نـوم ووېشـل او ډاډ یې ورکړ، اسلامي امارت له تېر څخه ښه تجربه ترلاسه کړې او اجازه به ورنه کړي، چي افغانان پـه بېلابېلـو نومونـو ســره ووېشــل ســي او د مجاهــدینو د کارنامو د خوندیتوب او دقیق او بې پرې تاریخ د راټولولو په موخه په پوره ژمنتیا سره هڅي رواني دي.

د یادوني وړ ده، چي د جهادي ارزښتونو لوی ریاست، پر افغانستان د انګرېزانو، پخـواني شـوروي اتحـاد او د امریکـا د یرغلونو پرمهال، دلتـه د یرغلګـرو د تـر سره کړو وحشتونو او افغان مجاهدینو د کارنـامو او جهـادي آثـارو د راټولولـو او خونـدیتوب پـه موخـه، د اطلاعـات او فرهنګ وزارت په اډانه کي تازه تأسیس سـوی او د جهـادي مـوزیم، آرشـیف او کتـابتون عملـي چـاري یـې پیـل سـوي دي.

**(۱) مخ پاته: له پاکستانه ۲۱ مهاجري...**

مسئولینو باختر خبري آژانس ته ویلي، د یکشـنبې پـه ورځ ۱۴ کـورنۍ چـي د کسانو شمېر یې ۷۳ تنه او په هغوی کي ۲۲ تنـه زنـداني مهـاجر هـم ول، خپـل هیواد ته راستانه سول.

له یـادو کورنیـو سـره د اسلامي امارت اړوندو ادارو له خوا، نغدي مرسته سوې او هم مرستندویه مؤسسو ته د مرستي په هدف ورپېژندل سوي دي.

**(۱) مخ پاته: زرونه کېلوګرامه...**

همدارنګـــه امنیتـــي ځواکونـــو د ښـــار او ولسوالیو څخه ۱۱۴ تنه پـه نشـه یي توکو روږد کسان راټول کړي او اړوندو روغتیایي مرکزونو ته یې معرفي کړي دي.



انځور: د کندهار ښار، علامه حبیبي واټ، یوه څنډه

انځور نیوونکی: شریف الله "ولیزاد"

## ټولنیزي رسنۍ

**احمد ظاهر "رشال":**

که څوک غواړي چي روزي یـې پراخـه او عمر یې اوږد سي، نو له خپلوانو سره دي نېکي کوي.

(بخاري –۵۹۸۶ مسلم –۲۵۵۷)

**بشیر احمد "الحنفي":**

یو سړی امام وکیع رحمه الله تـه بد–رد وویل، خو هغه یې جواب ور نه کړ!

چا ورته وویل: ولي دي جواب ور نه کړ؟

امام وکیع وویل: نو موږ علم د څه له پاره زده کوو؟!

(روضة العقلاء، ص ۱۶۶)

**حسیب "نورمل":**

ځان ته باید دا هر وخت یادونه وکړو چي داژوند؛ هره ورځ او شېبه یې فقط یو ځل راځي.

ښه دی چي د ژوند په هره شېبه کي ژوند وکړو او خوند ځني واخلو.

(ژباړه: نورمل)

**جنید "مرتاض":**

په ولاړه مړ سه؛ خـو پر ګونډو ژونـد مـه کوه!

**Nesar Ahmad Nekmal:**

کورني ژوند ته هوښیار سړی په کار دی چي هر څه ته یې فکر وي، دا یـوازي پـه چیغو بانـدي نـه کېږي، بلکـي د دې لـه پاره سمه رهبري پـه کـار ده چي پـه څـه وخت کي څه وکړي.

**Nisar Samad Wasifi:**

عالي معیار؛

بد هېرول د اعلی ذهانت او سالم بدن نښه ده!

**ختیځ "نوروز":**

مینه د مور خوند کوي.

غوسه د پلار خوند کوي.

نصیحت د مشر ورور خوند کوي.

دعاوي د خور خوند کوي.

ملاتړ د ملګري خوند کوي.

**Aminrahman Yaad:**

هڅه وکړئ چي له ملګري سره په سخته ورځ کي ملتیا او مزل وکړئ.

یوازې د ښې ورځې ملګري مه جوړېږئ، ځکـه د ښـې ورځـې ملګـري هـر څـوک کېدلای سي.

**عبدالواسع "سمسور"**

د انسـان د ښـه والـي معیـار ښایسـت او پیسه نه، بلکي اخلاق دي.

**Abrar Agha:**

په ورځ کي رزق ولټوه، په شپه کـي هغـه ذات ولټوه چي رزق یې در کړی دی.